# متلونه اومعنا یی

دلیکلو نیټه۱۵/۴/۱۳۹۷




لیکونکی :سعادت الله (دوستي)

متلونه هغه په وزن پخي
خبری دي چي دخبرو ټينګار
لپاره کارول کيږي
دمتل ويونکی معلوم نده
متل ديوه عالم پوه شخص
لخوا ويل کيږي
هر متل په ځو معناوو راځي

# هر متل دیوه کتاب غوندي
# معنا لري



متــل:چي کري هغه به ريبي

مانا:هر عمل هر کارچي صادروي دهغه
حـــــساب چي هر وخت وي خامخا به يی ورکوی

متـــل:مار ته په لستوڼي کي ځای مه ورکوه

مانا:دښمن لنډ مه پريږده که هر څومره چي خوږ
شي بياهم ستا دښمن ده لرې ورڅخه ګرځه

متـــل:په یوه ګل نه پسرلی کیږي

مانا:که چیری په یوه ټولنه کي ښه یابد سړی وي هیڅ نشي کولای

متـــل:خپل عمل دلاري مل

مانا:هرکار چی کوي نتیجه یی خامخا وینی هم په دنیا هم په اخرت کي

متـــل:ادب له بي ادبه زده کیږي

مانا:که څوک بدکار وکړي ليدونکی دځان سره فکر کوي که چيرته زه هم همداسي کاروکړم دی ماته بد ښکاري نو زه به هم بد ښکارم

متـــل:درياب په يوه لوټه نه خړيږي

مانا:که په يوه ټولنه کي ښه خلګ ډيروي يو خراب سړی دی ټول نشي خرابولی

متـــل:چي بد ګرځي بد به پرځي

مانا:چــــي له بدو خلګو سره ګرځي هر وخت په هر ځای کي به ناکا يی خپل کار به نشي سمولای

متل:چي څه کوي په چا وبه سي پرتا

مانا:هيڅکله چاته کوهی مه کينه  هغه کوهي ته به ته ورلويدلی يی

متل: چي اوسي په خوی به دهغو سي

مانا:هرچيري چي اوسي که له ښوخلګو سره که له بدو خلګوسره هغه سي به يی                    مثلاً:که ديو عطر پلورونکی دوکان ته ورشی چی را وزي

که مو په ځنګ کي ملګري وروست او(ګنده) وو
باورشي چي دهغه ورست والی( اوګندوالی) تاسوته سرايت
کوي




دعطرو بوی به دي ځي اوکه دقصاب دوکان ته
ورشی چي راوزي دغوښي بوی به دي

متـــل:بي قامه مقام نشته

مانا:که څوک قوم ونلري دده هيڅ رتبه يا مقام نشته

متـــل:بي کارے دبدبختي زانګو ده

مانا:بي کاري لويه بدبختي ده که چيري څوک بيکاره شی په دے دي پوه شی چی بدبختی ورته راغله

متل:دتوري پرهار جوړيږی خو دخولي پرهار نه جوړيږي

مانا:په توره چي څوک ووهل شی پرهار يی اخير جوړيږي دخولي پرهار يعني ښکنځل،بدي خبري،پوچ پاش ويل دخولي پرهار ده داځکه نه جوړيږی چی تول وخت په زړه کي وي

متــل:ا دب له زحمته اخیستل کیږي

ځوک چي ډیرزحمتونه، خواری تیري کړې هغه حال ورته معلوم شي بیا ډیر په نرمي چلند کوي

متل:اجل چي راشي وخت نه غواړي

مانا:که په یوچا غم یا پیښه راشي نه ردیږي نه یی خنثاکولای شي

متـــل:اخوریی جوړکړویل اس به خدای راکړي

مانا:څوک چي هر کار کوي امید دي له لاسه نه ورکوي خدای په هرښه کار کي له چاسره مرسته کوي

یوعالم کیسه کوی وایی زه یووخت په یوجومات کی ناست وم یو میړی ماښام یوي پایی ته دختلو کوشش کول تر نیمایی چي به وخوت بیا به راولوید ترسهاره پوري ۳۰۰ځله وخوت بیابه راولوید اخیر وخوت

دا میړی ځکه کامیاب شو چی امید یی له لاسه نه ورکول

متـــل:بيکاري لنګيړي خواري تري زيږی

مانا:که څوک بيکاره وی خـــــــــــامخــابه خوارے وربـــــاندي راځي دی هيڅ وخــــــت اسوده ژوند نشی کولای

متـــل:بي کاره انسان ته شيطان کارګوري

مانا:انسان چي بيکاره شي هره ګنا کوي کاريی نه وی غلا کوي......

متـــل:بيړه دشيطان کار ده

په هرکار کی بايد تلواره ونکړو ځکه دتلواري کــــــــارخـــــراب ده

متـــل:بےاتفاقي دکوروراني ده

مانا:که په يو کورکي بي اتفاقي راشي هرڅوک به خپله مخه ځي ديوبل په حال به نه وي خبر هر يو به له وراني سره مخ کيږي خوار اوذليل ژوند به يی وي

متـــل:بي حرکته برکت نشته

مانا:څوک چي حرکت(کار)نکوي برکت به له کومه شي چی هرشی وي هغه به خلاص شي

متل:بي عقل جمال خوښوي عاقل کمال

مانا:پوه سړی هروخت هرجای کمال،کار،خوی خوښوي خوناپوه
بيا هروخـــــــــت تنـــــها
ښـــــايست خوښـــــــــوي

متل:بي غيرته سړی هم ځان وژني هم بل

مانا:څوک چي بيغيرته وي پرمـــــــخ نشے تلای
هم ځان له ګواښ سره مخ کوي هم بل له ده سره
زړه نه وي  هيڅ نشي کولای

متل:ورور دي وي په لاهور دي وي

مانا:دچاچي ښه ورور،ښه ملګرى،ښه دوست وي هرچيري چي وي يو وخت به په درد درته وخوري

متـل:مكـوه پــه چــاوبــه شي پــه تــا

مانا:په چاظلم تيرى مكوه نن كه ستا زور ده سبـــا بياهغه ته هم زور په لاس ورځي په نن پسي سبا شته

متل:څوک چى خلف لرى نه مري

مانا:څوک چي خلف(عوض) يعني ښه زوى،ښه ورور،ښه دوست لري هيڅ وخت يى نه هيروي تل يى په ياد لري نو دى داسي شو لكه ژوندى

متل:رټل ډير سي دوستان لږ سي

مانا:څوک چي په هرشي غوسه،ښكنځل كوي هغه به هر وخت تنها وي دوستان به يى نه وي

متـل:تر ورخ دتيري اوبه نه راګرځي

مانا:خبروته بايد پام فكر وكړو كله چي يو خبر له خولي ووزي بيا نه راګرځی هرڅومره كوشش چي وكي بيا هغه خبر نشي راګرزولای

متــل:ديوي سپږي له لاسه څوک روغ پوستين اورته نه اچوي

مانا:څوک چي ښه دوست ښه ملګری لري ديوي كوچنی غلطي له امله هغه له لاسه نه وركوي هغه غلطي به ورته واضح كړي د سمولولارښوونه به ورته وكړي

متــل:اصل خطا نلري كم اصل وفا نلري

مانا:څوک چي له اوله اصل وي بيا چي هر څومره
خطاوکړي خطا يی نه ده او کم اصل چي
بياهرڅومره وفا وکي بياهم بي وفا کيږي

متل:غل ته وايی غلا کوه کوروالا ته وايی بيداره
اوسه

مانا:دامتل ددوه مخه خلګولپاره ويل کيږي تاسره
چي ناست وي يورډول وي بل ځای چي ته نه يی
بيا بل څه وايی

متـــل:بلاوه برکت يی نه وه
مانا:يوه پيښه ډيره غټه او ضرري وي په خلګو
راشی بيا خلګو ته ضرر ونه رسوي دامتـــل ويل

متـــل:تجربه لوی استاذ دهـ√

مانا: څوک چي تجربه لري هر ځای لاربنوونه ورته کړي دی په هر کار کي کامیا ب وي ځکه داستاذ خبره ډیر تاثیرکـــــوي

متــل:تخت سلیمان ته پاته نشو اوګنج قارون ته

مانا:دادنیا اخیر پاته ده په دي دنیا دی څوک نه نازیږي ځکه سلیمان<ع>پیغمبر وه چي تخت ته تر قیامته تخت ورته پاته نشو

متــل:تراوبودمخه کالي مه کاږه

مانا:هرکار چي کوي تياري بايد ورته ونيسی که
چيري تا تياري نه وي نيولي کار دي خرابيږي

متـــل:تربـــدخيري خراب ګنـــډلی ښه ده

تـــرپاته کـــار خراب کار ښـــه ده ځکه چي پاته کار
هيڅ حاصل نشتـــــه اوخراب کار بيا هـــــم لږ
حاصل کـــــوي

متـــــل:تربورته بي وروره مه شي،اوورورته بي
زويه مه شــے

مانا: اوس عصر ټول همداسي ده  تربور ستامرګ ته په انتظار ده چي ته مړ شي ستـــــاهر څه به ده تـــه پاته شي او چي ورور وي دئ بیا څه نـــشي کولای ورور  هم دغسي ده

متـــل:تربیعقل دوست هوښیار دښمن ښه ده

مانا:دبیعقل دوست به تـــل ضرردر رسیږي خو ددښمن یواري ضرر دررسیږي له دښمن غچ هم اخیستلای شوای خو له دوسته یی نه نشي اخیستلای

متـل:ترپښولانـــدي ځمکه مه ګوره

مانا:داځمکه ځکه مه ګوره چي ته وربانديي روان یی ستا مرستندویه ده

متـــــل:ترکاڼي دبیزو کار نــــــده

مانا:هرکار  کاسب غواړي هرڅوک نشي کولای چي هرکار وکړي

مثلاً:دهقان د ډاکتر کار نشي کولای
ډاکتر بیانجاري نشي کولای

متـــل:ترکورني سړي ګښته خر ښه ده

مانا:سړی کور ناست وي هیڅ کټه یی نه وي
مصرف لا دی کوي او ګښته خر خو پدي ښه ده
چي بار وړي خلک ګټه تري اخلي

زموږ په ټولنه کي دا یو ډیر بد عادت ده چي
زمری تل ستایی او خر ته تل بدوایی زمری دی
داړي خوري یی اوخر ددوی خدمت کوي که
چیري دا توپیر زموږ په ټولنـــه کي وشی زموږپه
دټولنه به تل ارامه وي

متـــل:ترناصالح اولادنيستي ښه ده

مانا:دچاچي ناصالح اولاد وي تاوانونه يی ور رسيږي تل به خپه وی تر هغه خو دا ښه ده چي اولاد يی نه وي ارام خوبه وي

متـــل:تـشـــه لاســـه تـــه مي دښمـــن يی

مانا:اوس زمانه ټوله پيسه ده دپيسو قدر ډيرده که دي پيسي وي ټول خلګ به دي قدر کوی که دي پيسي نه وي قدر به دي باد يوسي   خو علم چي له چا سره وي چي په هر حال وي قدر يی زيات وي

متــــل:تللى وخت بيرته په لاس نه راځي

مانا:هروخت دنن ورځي کار سبا ته مه پرېږده وخت سره زرده بايد له هر وخت څخه سمه ګټــــه واخلـــو

يوه سړي له يوه عـــالم څخه پوښتنه وکړه زه څه وخت مړ کيږم؟ عــــالــــــم ورته وويل هره ورځ سړي وويل دا څنګه!عالم ورته وويل ستا مرګ هره ورځ راتلونکى ده ته بايد هره ورځ تياري ونيسي





زماګران پلار جان
تـــــه لـه مــــــــــاسره یی
دژوند په هره برخه کي هلي
ځلي کړيدي